# په اورونو کې سندرې

شاعر

محمد اسمعیل یون

# بسم الله الرحمن الرحيم

## کتاب پېژندنه


| | |
|---|---|
| د کتاب نوم: | په اورونو کې سندرې |
| شاعر: | محمد اسمعیل یون |
| خپرندوی: | یون کلتوري یون |
| چاپشمېر: | ۱۰۰۰ ټوکه |
| لومړی چاپ: | ۱۳۷۲ل کال |
| دویم چاپ: | ۱۳۸۷ل کال |
| د شاعر پرله پسې نومره: | (۱۰) |
| د خپرندوی پرله پسې نومره: | (۱۰) |
| کمپوزر: | ضیاالرحمن ضیا |

# نیولیک


| ګڼه | سرلیک | مخ |
|---|---|---|
| ۱ | د دویم چاپ سریزه | ۱ |
| ۲ | سریزه | ۴ |
| ۳ | تاب | ۱۰ |
| ۴ | د ارواګانو سلګۍ | ۱۲ |
| ۵ | ساده قتل | ۱۳ |
| ۶ | د ژوند رنګ | ۱۵ |
| ۷ | سهوه | ۱۶ |
| ۸ | نامعلوم قبرونه | ۱۸ |
| ۹ | اسمان او ځمکه پوه دي | ۲۰ |
| ۱۰ | نیمه لاره | ۲۲ |
| ۱۱ | ستوري ستوري اوښکې | ۲۴ |
| ۱۲ | ماتې هیلې | ۲۶ |
| ۱۳ | د ځلورو کلو شپې مې | ۲۸ |
| ۱۴ | د کفر رحم | ۲۹ |
| ۱۵ | کیسې | ۳۱ |
| ۱۶ | له ځانه سره جنګ | ۳۳ |
| ۱۷ | لکه وختونه چې وختونو کې مري ۳۵ | |
| ۱۸ | وینې تخیل | ۳۶ |

| | | |
|---|---|---|
| ۱۹ | د شعر په پانیو | ۳۸ |
| ۲۰ | زهر | ۴۰ |
| ۲۱ | دا په کومو سترګو ګورې ! | ۴۲ |
| ۲۲ | بری که نابری | ۴۳ |
| ۲۳ | سپېڅلی غرور | ۴۵ |
| ۲۴ | د سپینو خولو پرخې | ۴۷ |
| ۲۵ | د اوښکو سباوون | ۴۹ |
| ۲۶ | زهرجنه خندا | ۵۱ |
| ۲۷ | دخندا وزرونه | ۵۳ |
| ۲۸ | امام شکرونه باسي | ۵۵ |
| ۲۹ | د اور په جېل کې | ۵۷ |
| ۳۰ | پوړنی | ۵۹ |
| ۳۱ | درښا حورو ! | ۶۱ |
| ۳۲ | د زهرو فصل | ۶۳ |
| ۳۳ | چاویل چې د ګلونو ښار به وران شي؟ | ۶۵ |
| ۳۴ | ولولیز پسرلی | ۶۷ |
| ۳۵ | د اوښکو احرام | ۶۹ |
| ۳۶ | اودګلو دسندرواتڼ بیا له سره وران شو | ۷۱ |
| ۳۷ | یوجانان او یو جام | ۷۳ |
| ۳۸ | خواږه خواږه زخمونه | ۷۵ |
| ۳۹ | دستورو قافله | ۷۷ |
| ۴۰ | مړاوی جانان | ۷۹ |
| ۴۱ | دسمال | ۸۱ |

| | | |
|---|---|---|
| ۴۲ | د میني پیغمبر | ۸۳ |
| ۴۳ | د سرو ټپونو کان<br>۸۵ | |
| ۴۴ | د پاڼو مومن | ۸۷ |
| ۴۵ | د صراط پُل | ۸۹ |
| ۴۶ | د جام جنازه | ۹۱ |
| ۴۷ | د سندرو په وزرونو | ۹۳ |
| ۴۸ | شهید غرونه | ۹۵ |
| ۴۹ | څلور شپې | ۹۷ |
| ۵۰ | ستوري لمرونه | ۹۹ |
| ۵۱ | د روح سپېڅلی زور | ۱۰۱ |
| ۵۲ | د شعر پري | ۱۰۳ |
| ۵۳ | سندریزه وږمه | ۱۰۵ |
| ۵۴ | د شعر حجاب | ۱۰۷ |
| ۵۵ | د محمد اسمعیل یون لنډه پېژندنه | ۱۰۹ |

# د دې ټولګې پر دويم چاپ څو خبرې

(( په اورونو کې سندرې )) زما د شعرونو دويمه ټولګه ده چې پر ۱۳۷۲ل کال په پېښور کې چاپ شوې ده. په دې ټولګه کې اکثره هغه شعرونه راغلي، چې ما د خپل تحصيل او تر هغه وروسته د تنظيمواکۍ پر مهال ليکلي او يو څو داسې شعرونه په کې هم شته چې د طالبانو د واکمنۍ د لومړيو کلونو په بهير کې ليکل شوي دي. دا ټولګه هغه وخت د هېواد د تکړه شاعر ښاغلي عبدالمالک بېکسيار په زيات ټينګار او مالي لګښت خپره شوه، که د هغه ټينګار نه واى، نو دا ټولګه ما هغه مهال نه خپروله. له هغه وخته بيا تر دې دمه زه پر يو لړ کلتوري، سياسي او ټولنيزو چارو دومره مصروف شوم، چې زما شاعرۍ ته يې ډېر زيان ورساوه. شعر



یو تقدس دی، زیات ذهد، تقوا و خلوت ته ضرورت لري، له سیاسي او ټولنیزو کارونو او په دې لاره کې له پرتو دېوانو او لېوانو سره، د شعر ملکه، الهه او پرښته یو ځای مزل نه کوي او نه د شعر ښکلا د سیاست له بدرنګیو سره غاړه غړۍ حرکت کوي، نو ځکه که څوک غواړي یوازې شاعر پاتې شي، بایده دي، چې خپل ذهن او قلم پر نورو ګڼو کارونو مصروف نه کړي. د شعر ښاپېرۍ یوازې ذهد، ښکلا او تخیل مني؛ له نورو ګڼو چارو سره یې کار نه شته. په همدې خاطر څومره چې زما نور کارونه ډېرېدل، د شعر ښاپېرۍ راڅخه مروربدله او لرې کېدله، خو بیا به هم کله په خوب او کله په ویښه راتله او زما د ذهني روزګار د ارامتیا سبب به کېدله او روحي ستړیا به یې رانه وړله. تر دې ټولګې وروسته مې کله کله شعرونه لیکلي دي، خو دومره لا نه دي، چې د یوې بلې ځانګړې شعري ټولګې بڼه خپله کړي.

زه هم په شعر پسې منډې نه وهم، کله چې دا ښاپېرۍ خپله راشي، نو بیا ورسره د زړه خواله کوم. هر کله چې زما شعرونه د بلې ټولګې تر کچې ورسېدل، بیا به یې د یوې ځانګړې ټولګې په توګه چاپ کړم. تر دې ټولګې وروسته لیکل شوي شعرونه مې ځکه په دې ټولګه کې رانه وړل، چې دا ټولګه د خپل زمان او مکان د حالاتو انځورنه کوي او نور وروستي شعرونه د

خپلې زمانې رنګ لري، نو ځکه مې دا ټولګه د خپل هغه وخت د ارزښت او اهمیت له مخې په خپله بڼه پرېښوده. په شعرونو کې مې هم ورته هېڅ ګوتې نه دي وهلي، یوازې هغه چاپي او املايي تېروتنې چې په تېر چاپ کې وې، هغه مې تر ډېره حده سمې کړې. ګرامري سمون خو هسې هم پر شعر یا نظم د پوره تطبیق وړ نه دی، نو هغه مې له خپل معمول حالت سره سم پرېښود. نورې خپلې خبرې نه اوږدوم او تاسې قدرمن، ددې ټولګې لوستو ته رابولم.

په درناوي
پوهندوی محمد اسمعیل یون
کابل- افغانستان
ارګ؛ د جمهوري ریاست ودانۍ
۱۳۷۸ل کال د سلواغې ۲۱مه

# سریزه

د یو مات ژوندون کیسه ده، ژړغوني شانته ژاړي
نیمه مړه نیمه ویده ده، ژړغوني شانته ژاړي

او دا کیسه د یو یون کیسه ده، د یو ژوند کیسه ده او زموږ د زماني د یو ژوندي تاریخ کیسه.
دا کیسه د هغو غمجنو شپو کیسه ده، چې د ښار واټونه بیا له سره او په نوي ریتم جوړېږي...

...

کوڅه کې شور شو او هاها شوه کوڅه رنګه شوله
د ښار واټونو کې د بنګو او د چرسو واټ شو جوړ
په یوه نوي ریتم
او بیا بنګیانو دوړې پورته کړې له خپلو ولو
پېغلــه یې ګډه کړه بربنډه لکه سپینه او معصومه
سپوږمۍ...

دا کیسه د هغو شپو او ورځو کیسه ده، چې د تقلبي قدرت پر ګډۍ ناست امام د وطن د مرګ تسبې تېروي او شکرونه باسي:

...

او د عطار له هټۍ نه راځي د عطرو او لونګو د
ورېمو رنګین رنګین تخیل
اوس هر ماښام له شپې پورېزو خونو
پېغلې د خپلې حیا روح سپاري
د خدای(ج) د پرښتو ګوتو ته
او د سپېڅلې ځمکې غېږې ته پناه وروړي
خو امام ناست د هوس په مرمرینه خونه
په خپلو ګوتو د وطن د مرګ تسبې تېروي
او د قدرت د جنون
د خوږو میو په ډنډونو کې بربنډ لامبي
او د ژړا پر ځای شکرونه باسي.

ددغو ټولو کیسو، شپو او ورځو شپو تر شا یو حساس او نوښتګر قلم چلوونکی ولاړ دی، چې په سرو اورونو کې یې هم د قلم نېغ سر چا ته ښکته نه شو او د مرګ او ژوند په اورنیو شپو کې یې هم د وطن سندره وویله او ښه په خوند یې وویله.

هغه لا تش اسمعيل و او يون يې لا نه وو پيل کړی، چې د کابل په سپېرو کوڅو کې زما ورسره اشنايي شوه، زه چې هر ځلي د اسمعيل نوم د ده په غياب کې ياد کړم، نو بيا مې يو په تنه خوار، وچ کلک او ځيرک زلمی، د ښوونځي درې ځلور کتابه په يوه اخبار کې راغبرګ په تخرګ کې نيولي نېغ سترګو ته و دربږي.

اسمعيل ټيک هماغه شان چې اسمعيل(ع) له خپلو پښو څخه د زمزمو د اوبو چيني راوخوټولې، له خپلو خلاقو ګوتو څخه د نوښت ويالې راخړوبوي. دی د دې په څنګ کې چې زموږ د وطن د ځلور کلنې ملي غميزې انځورونه کاږي، خو شعر ته د تعهد او نوښت مساله يې هم له ياده نه ده ايستلې:

د زړونو زورو مو دلبرانو لوټ که
لکه وطن چې رهبرانو لوټ کـه

د تـا د شـونډو قـهر زمـا زړه وېروی نه شي
دا روس کله کوی شي له افغانه سره جنګ؟

د يون په دغه ارزښتناک زيار کې يوه بله د يادولو وړ خبره د ټپې او ازاد شعر د انډول ده، سره له دې چې دغه کار د يون په ابتکار کې نه شي راتلای او تر ده دمخه زموږ نورو ليکوالو هم دغه کار کړی دی، خو په کوم انداز کې چې يون ټپه او ازاد

شعر سره غاړه غړې کړي، زما په خيال زموږ په معاصر ادب کې به يې بېلګې کمې وي، د بېلګو له راوړلو څخه يې په دې نيت تېرېږم، چې نه غواړم ټول کتاب يو ځل په سريزه کې په لوستونکو ولولم. د يون په شعر کې د زياتو ښکلاوو څخه يوه دا هم ده، چې هغه هره خبره لکه هماغه شان چې د وخت او حالاتو ضرورت دی، نېغ په نېغه او رسا کوي، ګيلې او مانې يې رسا د نښې منځ ولي او د پښتني ټولنې نيمګړتياوې د يوه حساس نقاد په شان راوباسي او د خلکو مخې ته يې ږدي:

چاوې يو قام زرو ته وکړه سجده
ما ته خو لر او بر پښتون ښکاري

...

دهېڅ مغول لښکر مې د زړه ښار کې پلی نه دی
شمشاد په وينو سور يمه خيبر وژلی يم

د زړه رڼا مې سره په وينو شوله
د هغې دغې عقيدې په نامه

له مرحوم استاد روهي سره مې د ځاني خبرو په ترڅ کې له خدای بښلي څخه دا خبره زده کړې وه، چې ويل يې: د هېڅ يوه شاعر ټول شعرونه اوله درجه نه وي.

د همدې خبرې په استناد باید وویل شي، چې د یون په دغه جونګ کې د ګوتو په شمېر دویمه درجه شعرونه هم راغلي، وګورئ د صراط پل، د سمال، زهر.

خو دا خبره په دې مانا نه ده، چې ګوندې د یون شعري یون پر همدې ځای ولاړ دی، یون ځوان شاعر دی او لا خو د خپلې شاعرۍ د لومړیو واټنونو لاروی دی، هغه به لا نور واټنونه وهي او یون به کوي او د پښتو پر لمن به د ډېرو داسې ګلو کر کوي، چې په ورېم او رنګ یې د خړ ځادري پښتون د ژوند پر شاړه کرونده د هیلو غوټۍ راسپړي.

که د پښتو ادب ټیکه داران مې په کفر محکوم نه کا او دا اجازت راکاندي چې د خپل ادب (پښتو ادب) پر لمن مې یوه پیش ګویي وکړم، نو باید وو ایم چې زه له ګران یون څخه دومره هیلې، غوښتنې او د خلاقو کارونو انتظارونه لرم لکه څومره چې خدای بښلي علامه عبدالحی حبیبي صاحب کړې دي. زما دغه خبره به هېڅکله هم په دې مانا نه وي، چې ګوندې ما به د علامه صاحب شان ته خدای(ج) مه کړه په کمو سترګو کتلي وي.

یون زمونږ د زمانې د تاریخ یوه پاڼه ده، که څوک یې منې او که نه؟ زه ورته بریالیتوب، په خوارونو تخلیقي کار او ښېرازه ژوند غواړم.

عبدالمالک بېکسیار

کوپنهاګن- ډنمارک

# تاب

زمـــا پـــه اســـوېلو ســـتا پـــه نـــازونو تيـــږه کېـــدو
پـــه يـــو ، وايـــه اشـــنا کـــه پـــه دوه ګونـــو تيـــږه کېـــدو

زمـــا ســـاده ملګـــرو ، ای پـــه يـــو نظـــر مينـــو !
لـــږ ټينـــګ شـــئ چـــې د ښـــکلو پـــه مکرونـــو تيـــږه کېـــدو

منـــو د معشـــوقو د اداګـــانو تـــاب مـــو نـــه شـــته
څـــه لويـــه قربـــاني ده چـــې پـــه زړونـــو تيـــږه کېـــدو

زما او ستا د سترګو جنګ پخوا ځنې عادت دی
نو څه که اوس په دروغو په جنګونو تېره کېدو

بس یو ځل مې د شونډو په خوږو کې روح اوبه که
منم پس له هغه به د لوزونو تېره کېدو

یو چا په ګونګوسیو ورته غوږ کې داسې ووې:
راځه د یون د هیلو په قبرونو تېره کېدو.

۵/۴/۱۳۷۰
کابل

# د ارواګانو سلګۍ

خلک خو وایي چې اولاد
د مور او پلار د زړه د مینې د باغ
تنکي ګلونه دي چې مړاوي شي او ورژیږي
نو زړونه هم مړاوي شي ورژیږي.
خو ما نه هیڅ هم ونه پوښتلې،
چې ستا د ګرانې نازنینې مور د هیلو،
امیدونو ارواګانو چې سلګۍ وهلې،
او ستا د پلار د جنازې د وینو رنګ کټ چې،
د کلي منځ کې،
له تا نه پټ تیریدو،
نو تا د لوی د یوال تر شا،
څو مره په زوره زوره وژړلې !؟

۲۸/۱/۱۳۷۰
د کوچني اختر دویمه، کابل

## ساده قتل

د سپینو اوښکو نور وای ورېدلی ورېدلی
د چا په سوو زړونو توېدلی توېدلی

افسوس د نرمې غېږې په خوږو کې دې تاو نه کړم
اسمان خو به څه نه وغورځېدلی غورځېدلی

دا څومره ساده قتل و چې بې اوره دې مړ کړم
تر شونډو دې وم کله رسېدلی رسېدلی

څه ګرمه پاچاهي به وه د جوجو او ماجوجو
که مخکې یې قاف نه وای ودرېدلی ودرېدلی

دتا د خوږې مینې تول خواږه پر ما حرام دي
پر زړه باندې که نه وم لګېدلی لګېدلی.

۱۳۷۰ل کال

# د ژوند رنګ

لکه د شپې په زړه کې
چې د سهر د وړمو پانې
شونډې وسپړي موسکی شي
او رڼا د خپلو سرو مرغزلینو وړانګو
د شال وربښمین پلو پر ځمکه خور کړي
نو ورځ زرغونه شي ترې
او بیا د ورځې د ښکلا د پرېشانۍ له سجدې
د شپې روح وتږوکېږي.
داسې مې ژوند کې د غمونو د جام
له پیمانې څخه خوښي جوړېږي
او د خوښیو د خندا د غرو له څوکو نه مې
غم څاځي
او د ژوند پاڼو ته مې رنګ ورکوي.

۲۸/۱/۱۳۷۰
د کوچني اختر دویمه- کابل

# سهوه

ډېره ښه شوه چې په خلکو کې رسوا شوم
نه د ځان شوم نه د زړه او نه د تا شوم

ستا د شونډو د سپرلي د بوډۍ تال ته
په ژړا کې ګلې څنګه په خندا شوم؟

د دې سترګو په خوږو کې دې څه روح و؟
چې یوه شېبه کې څو ځلې پخلا شوم

تـــر دې زيـــات د نهيليـــو مـــاتم ثـــه دی؟
د هغـــې ډولـــۍ چـــې تلـــه نـــو پـــه ژړا شـــوم

د غمونـــــو او دردونـــــو دې دنيـــــا تـــــه
لويـــه ســـهوه زمـــا دا وه چـــې پيـــدا شـــوم.

۲۱/۸/۱۳۷۰
کابل پوهنتون

# نامعلوم قبرونه

که یوه ښه ګېډۍ د ګلو کړمه جوړه د زړه باغ کې
د احساس له پاڼو
او د وربښمین حسن ځلا ته یې د زړه د عاطفې د اوښکو ستوري،
لکه سپین څاڅکي د سهار د پرخې ونښوم
لاړ شم د کلي هدیرې ته !

نو به د چا پر قبر کېږدمه د ګلو ګېډۍ؟
د چا د قبر توغ به وموښم په خپلو سترګو ؟
د چا له شناختې نه به تاوه کړم د زړه د ارمانونو لمبه؟

د چا د قبر د سپېرو خاورو سپېره ګردونه
به د ماتم ماتم ژوندون پر تندي باد کړمه
په لپو لپو ؟
قبرونه ډېر دي
هديره ډکه ده
خو زه د خپلې نازولې مور او پلار قبرونه
نه پېژنم.

۲۹/۱/۱۳۷۰
د کوچني اختر دويمه- کابل

# اسمان او ځمکه پوه دي

عقل رنځور و ؟
د سور کۍ ښکلا د شونډو په خوږو يې
د زړګي د ارادې مزي ترلي وو ټول.
احساس يتيم و
زنګولې يې د خپلو ښو ټال کې
ځلېدونکې اوښکې
غيرت په وينو رنګ و
د کلي رنګه برګ الوتې وه
يو وهم خور و،
هېڅوک هم پوی نه شول چې څه وشول
يوازې شنه اسمان

د خپلو رڼو سترګو
د رڼو اوښکو له ستورو څخه
هر څه چې وشول هغه ولیدلو
یوازې ځمکه پوه شوه
چې زما د زړه د ارمانو د وطن
څومره بې شمېره جنازې یې
زړه ته ننوېستې.

۳/۳/۱۳۷۰

# نیمه لاره

پرې مې ږدئ چې دود شم د ارمان په نیمه لاره
داسې چې پرې ایښی یم جانان په نیمه لاره

زما د خوږې مینې نو په دې کې ګناه څه وه؟
سپرلی چې رانه لوټ کړلو خزان په نیمه لاره

اشنا شونډې غوټچه کړه سترګې جام اننګې مینه
زړګی دې رانه وړی دی ارزان په نیمه لاره

د کــومې مینــې غــچ و او د کــوم ســرود بــدل و ؟
یــو ازې چــې دې پرېښــودم حیــران پــه نیمــه لاره

هېچــا د زمــانې د مکــر زیــر او بــم ونــه پوښــت
دې یون خو ورتـه خیـرې کړ ګرېو ان پـه نیمـه لاره.

۱۸/۸/۱۳۷۰
مرکزي لیلیه، کابل پوهنتون

# ستوري ستوري اوښکې

که د رانه زړه د ((پوهنې)) د ځوانۍ د ځوانو هيلو خندا
د ګل د شونډو د عطرونو سيند کې تاوه کړي
د خپلو ارمانونو لمبه
او د احساس له پاڼو پاڼو څخه جوړه شي ډولۍ د ژوندون
عاطفه سور او زرغون شال شي پرې راوغوړېږي
ته لکه سپينه سپوږمۍ ځلې په کې
سپرلی د ټول کلي کوڅې او لارې وويڼځي په خپلو وږمو
او لمر د ټول طبيعت زړه ته په سجده کړي
خپلې نرمې وړانګې
د کلي لر او بر ګودر کې د منګيو اټڼونه جوړ شي
او زه تر شلو کلو وروسته،
څڼې غوړې کړم د (چا) د اننګو په خولو
د وريت احساس د دنګو غرو د مست کوچي په شان يې

د خپل اواز له ترنمه سره
په ولو ونځوم
او ستا ډولۍ ته اوږه ورکړم د زړګي په قوت
څومره به ښه وي چې نور خاندي د هوس په شونډو
او زه له ډېرې خوښۍ
ستا د ډولۍ له هره ګامه سره
په لپو لپو ستوري، ستوري اوښکې تويې کړمه ! !

۲/۳/۱۳۷۰
کابل

# ماتې هیلې

زړګی به په کې وران شي که ځیګر به په کې وران شي
زما خو به دا دواړه ستا نظر به په کې وران شي

زما د غیرتو او ستا د حسن دښمنۍ کې
مورچل وایه اشنا او که ګودر به په کې وران شي

د شونډو د سپرلو پاڼې دې مه رپوه یاره
زما د ماتو هیلو جوړ لښکر به په کې وران شي

د ظلــــم او وحشــــت د پخلاینـــې پــــه اتــــڼ کــــې
لویان به نور هم لوی شي در په در به په کې وران شي

راځـــه د یـــون د هیلــو پـــه زړه مـــه اړوه خـــاورې
د (هغــې) معشــوقې د پـل اثـر بـه پـه کـې وران شـي.

۱۵/۸/۱۳۷۰
مرکزي لیلیه، کابل پوهنتون

# د ځلورو کلو شپې مې

د يو ځوان عمر څپه مې
اسوېليو رانه دود کړه
د ځلورو کلو شپې مې
د کوم چا روژه نيولي غوندې شمار کړلې په ګوتو
ددې دومره عمر پاڼو د رڼو سترګو انځور کې
مې هېڅ چا ته هم ونه ويل،
چې کوم رنځ مې په زړه ناست دی؟
د چا حسن مې ښخ شوي وينه؟
چا مې ورى زړه په مينه؟

۱۴/۲/۱۳۷۰
نصرو کلا- بګرام

# د کفر رحم

د لسو کلو درد مې له دې قام نه تپوس وکړئ
زما د وچو شونډو بیا له جام نه تپوس وکړئ

د کوم هوس په زړه کې سوز او درد د مینې ګورئ
د سوز او درد اثر له ما ناکام نه تپوس وکړئ

احساس مې راته رپي چې یار خاندي او زه ژاړم
د حال ژوندون خو دادی له انجام نه تپوس وکړئ

د یار له شونډو مه پوښتئ زما زړګي ته ګورئ
د کفر به څه رحم وي اسلام نه تپوس وکړئ

زمـا پــه ګــودرو کــې چــې د چـا اســونه تېــر شــول
ســهر پــرې خبــر نــه دی لــه ماښــام نــه تپــوس وکــړئ

یــو یـــون پـــه لویـــه لاره مینـــانو تـــه دا ووې:
که غواړئ ژوند مو اور شي ما بدنام نه تپوس وکړئ.

۱۹/۸/۱۳۷۰
مرکزي لیلیه- کابل پوهنتون

# کیسې

د انګار د سرو بڅرو
د وهمونو ژوند نه وروسته
د جنت د شنه انځور کلي ته لاړم
د مرموزې چوپتیا سیوری و
د دنګو کلاګانو
او د ونو د شنو پاڼو
پر زخمونو غوړېدلی
خو د زړه له درد نه جوړ و
فریادي اوښکو کې ماته

ددې دنګو کلاګانو
دنګو دنګو دېوالونو
او د شنو تاکونو پاڼو
د رازونو او رمزونو
غیرتونو او ننګونو
ډېرې ډېرې کیسې وکړې
ډېرې ډېرې...

۱۳۷۰ل کال
نصرو کلا - بګرام

## له ځانه سره جنګ

بېګـاه مـې خـوب کـې وکـه لـه جانانـه سـره جنـګ
زړګـــي مـــې ګنـــې وکـــه لـــه ارمانـــه ســـره جنـــګ

قربـان دې لـه بڼـو شـم تـه مـې ولـه زه بـه خانـدم
کـوم چـا دی کلـه کـړی لـه خپـل ځانـه سـره جنـګ؟

د تـــا د شـــونډو قهـــر زمـــا زړه وېـــروی نـــه شـــي
دا روس کلـه کـوی شـي لـه افغانـه سـره جنـګ

په شا چې کله ګورې نو په موسکو شونډو ګوره
اشنا پښتانه نه کړي پښېمانه سره جنګ

کوم څوک مې دا زړګی د عاطفې په اوبو وینځي
د نفس اورونه وژني کړي ګرېوانه سره جنګ

یو (یون) هم د همغو له لښکرو سره یو شو
چې سپین سباوون غواړي کړي زمانه سره جنګ.

۲۴/۸/۱۳۷۰
مرکزي لیلیه- کابل پوهنتون

# لکه وختونه چې وختونو کې مري

لکه وختونه چې وختونو کې مري
او زمانه لکه سرزوری پښتون
پر مخه درومي د مرګي غېږې ته
او شاته نه ګوري د میو او ګلابو اتڼ
داسې مې روح او د زړګي پردو کې تاوه مینه
ستا قدمونه څاري
ستا قدمونه.... !

۲۷/۷/۱۳۷۱
کابل

# وینې تخیل

د یـــو مـــات ژونـــدون کیســـه ده ژړغـــونې شـــانته ژاړي
نیمـــه مـــړه نیمـــه ویـــده ده ژړغـــونې شـــانته ژاړي

د ســـندرو وزر مـــات شـــو تخیـــل نـــه وینـــې څـــاڅي
پـــه مـــاتم کـــې ننـــداره ده ژړغـــونې شـــانته ژاړي

د غمونـــو ډزې وشـــوې د شـــیرنې پـــه کوڅـــه کـــې
د فرهـــاد د مرګـــي شـــپه ده ژړغـــونې شـــانته ژاړي

ولـــولیزو شـــېبو وران کـــړ د روښـــان تفکـــر څلـــی
د فکرونـــو جنـــازه ده ژړغـــونې شـــانته ژاړي

راتـه ښـکاري هنـد وکش کـې مغـو ليزه شـمله هسـکه
ټيټـه شـوې تـاتره ده ژړغـونې شـانته ژاړي

د تورانـو ژوبلـورو د ملالـو بنګـړي مـات کـړل
پښـتنه لمبـه سـړه ده ژړغـونې شـانته ژاړي

ستا د شونډو پانې چېرې څوک د اوښکو په تاو وينځي؟
د احسـاس پـاتې ايـره ده ژړغـونې شـانته ژاړي.

۱۰/۴/۱۳۷۱
کابل

# د شعر په پانړو

نــن دې پــه ســترګو کــې پــرون ښــکاري
لکــه پــه مــرګ کــې چــې ژونــدون ښــکاري

بيـــا دې د زړه لـــه ارادې نـــه خـــلاف
څنګــه پــه شــونډو کــې پــاڅون ښــکاري

زمــا احساســه- فکــره ويلــې نــه شــې !
درتـــــه د زور او زر تـــــړون ښـــــکاري

نــور د ښــکلا پــه ســيند کــې پــورې وتــل
پښــتون پــر ماتــه کښــتۍ ســتون ښــکاري

زما د ګل وطن د شعر په پاڼو
نن هم د سرو وينو مضمون ښکاري

چا وې يو قام زرو ته وکړه سجده
ما ته خو لرو بر پښتون ښکاري

د زړه پېښليک مې ياره څه له ګورې؟
په هره پاڼه کې شبخون ښکاري

منم پښتو مې ځنکدن نه مني
که بر سکون شو نو لر (يون) ښکاري.

۲۷/۷/۱۳۷۱
کابل

# زهر

زړه مې نرى نرى خوږېږي د چا مينو باندې
خو مره بې رحمه طاعون اوري ګلورينو باندې

پام پرې ګوزار د ګل د پاڼو چېرې هم ونه کړئ
مالويه کړې خپله مينه او ښکو سپينو باندې

ما خو دې سترګو کې د زړه وطن ښکلا کتله
چاوې (سقاو ) زهر به څښې شونډو شيرينو باندې

څومره تو پير دى د مينو او قاتلو ترمنځ
موږ په پر مينو نه مړېږو دوى پر وينو باندې

مینه تباه شوه احساس دود شو ښکلا وسوځېده
اوس د ښکلا سندرې نه لګي غمګینو باندې

چا وې د ګل وطن قاتلو ته دې هېڅ ونه وې
اوښکې مې اورې د وطن پر قاتلینو باندې

د اور پر لیکه سوې یون په لپو لپو ژړل
وې د وحشت تناب حاکم شو زړو وربښمینو باندې.

۳/۳/۱۳۷۲
الینګار- لغمان

# دا په کومو سترګو ګورې؟

تا خو وې چې زما دواړه سترګې ستا دي
په کې ګوره د خپل مات ژوند
د رڼو اوښکو د هیلو انځورونه
د سبا د امید ستوري
د خوږمن زړګي اهونه.
تا خو وې: ((زما په سترګو کې دې ګل شي
که به یې ستا په مینه بل ته غړومه))
خو اوس ای د مینې څړیکې!
د ښکلا د سپوږمۍ وړانګې!
دغه نوی پسرلی چې:
ستا په زلفو کې یې وتومبل ګلونه
تا یې وموښل په مینه
په لاسونو کې لاسونه
دا په کومو سترګو ګورې؟

کابل

# برى كه نا برى

منم زما كه دې سرور مات كړ
ستا د ښكلا مې هم غرور مات كړ

لږ خو مې سترګو ته په ځير شه اشنا !
چا د لوزونو كوه طور ماته كړ

مغوله خياله ! په سجده شه راته
خوشال زړګي مې رنتبور مات كړ

تا مې په زړه د اور باران وراوه
ما دې په سترګو كې د عشق نور مات كړ

دا دې بـــــرى کـــــه نـــــا بـــــرى وبـــــولم؟
چې په خپـل لاس دې خپـل منصـور مـات کړ.

۱۵/۵/۱۳۷۲
کابل

# سپېڅلی غرور

چا وې د ژوند سپرلي ته دې په کمو سترګو ګورم؟
پخوا که په رڼو و اوس په نمو سترګو ګورم

د تا د شونډو پانې چې غوړېږي او موسېږي
دا زه ورته محبوبې په شبنمو سترګو ګورم

قربان د دا سې مینې د غرور له سپېڅلتیا نه
چې خپل رقیب ته ګورمه په برمو سترګو ګورم

دا څـو ځلـې دې راکـړل سـترګو سـترګو کـې زهرونـه
دې سـترګو تـه دې نـور خـو پـه پرچمـو سـترګو ګـورم

په دې ورانه کوڅه کې مې ځیګر او زړګی مات شول
خـو اوس هـم ورتـه یـاره پـه صـنمو سـترګو ګـورم

زمـا د زړه چینـه کـې د عشـق اور دی لګېـدلی
نـو ځکـه ټـول جهـان تـه پـه همـدمو سـترګو ګـورم.

۱۲/۵/۱۳۷۲
کابل

# د سپینو خولو پرخې

یاد خو به دې وي؟
چې یوه ورځ مې ستا په سترګو کې
د هیلو ګلان یو یو ټوکولو
لاس مې ستا په لاس کې کېښود
ټول وجود مې سره لمبه شو
ستا په زنه کې راټولې شوې
د سپینو خولو پرخې
ما په خپلو دوارو سترګو
په کې ولید

د خپل مات برخليک سيوري
ستا د مخ خولې مې وچې کړې په خپلو اسوېلیو
خو زما له سترګو اوس هم
سرې او سپینې اوښکې څاڅي.

۲۲/۵/۱۳۷۲
کابل

# د اوښکو سباوون

د زړونـــو زور مـــو دلبرانـــو لـــوټ کـــه
لکـــه وطـــن چـــې رهبرانـــو لـــوټ کـــه

زمـــا قاصـــد ســـتا پـــه کوځـــه کـــې اشـــنا !
پـــه رښـــا ورځـــې رقیبـــانو لـــوټ کـــه

د عــــاطفې د بــــڼ د ګلــــو لښــــکر
خـــزان لـــوټ نـــه کـــړ باغوانـــانو لـــوټ کـــه

ربـــــه !د تـــــا د دیـــــن روښــــانه څــــراغ
پــــر دیـــن مینـــــو پتنګــــانو لـــــوټ کــــه

زمـــا د تـــول عمـــــر د هیلـــو ســـــپرلی
د کلـــــي ټولـــــو مشـــــرانو لـــــوټ کــــه

د معشـــــوقې د مــــخ د مشـــــکو کـــــاروان
تـــر غلـــو لاړ نـــه شـــو کاروانیـــانو لـــوټ کـــه

د اســــــمعیل د اوښکو ســـــــپین ســــــباوون
شـــــاوخوا ټولـــــو اشـــــنایانو لـــــوټ کــــه.

۱۹/۵/۱۳۷۲
کابل

# زهرجنه خندا

څه د احساس څه د جذبې په نامه
ځواني مې لاړه د هغې په نامه

د وينو جام مې نڅوي پر شونډو
د تا د شونډو د کعبې په نامه

د زړه رڼا مې سره په وينو شوله
د (هغې) (دغې) عقيدې په نامه

د توپـــــانیزو اســـــو بلیو لښـــــکر
ســترګو دې لــوټ کــړ د جرګــې پــه نامــه

د زهرجنـــې خنـــدا شــــنه پســــرلي
پـــر مـــوږه اوري د وعـــدې پـــه نامـــه

او ښــکې مــې څښــلي اسـو بلو کــې لامــبم
دار تـــه مـــې بیـــایي د نشـــې پـــه نامـــه.

۱۴/۹/۱۳۷۲
کابل

# د خندا وزرونه

په فرهاد فرهاد زړګي مې د اورونو پرېشاني شوه
په شيرين جنت وطن کې چې مې جوړه سقاوي شوه

د منصور عقل لمبه به څنګه پانې شي دمينې؟
د سپين دېو منطق کې ډوبه د عشقونو پاچاهي شوه

د احساس پاڼو رژېږئ، د عطرونو وږمو ژاړئ
سندريزو ولولو کې پابندي په پسرلي شوه

د خنـــدا وزرې پـــرې کـــړئ، د ګلونـــو غـــاړې غـــوټې
د ژړا پـــه اور کـــې کېنـــئ عقیـــده مـــو اســـلامي[1] شـــوه

عقلـه څنګـه ورتـه رېـږدې؟ ورتـه جـګ کتلـی نـه شـې !
ستا رڼا کې د غلو څنګه کامراني شوه کامیابي شوه

ای د اور پـه میـوو مســتو د عشـقونو سـپینو سـتورو !
د ظلمونـو شــپه رڼـا کـــړئ ګنـــې ختمـــه زنـــدګي شـــوه.

۱۵/۹/۱۳۷۲
کابل

[1] هغو کسانو ته اشاره ده چې په غلطه، اسلام د غم دین معرفي کوي.

# امام شکرونه باسي

د ګلو ښار لمبه لمبه شو
او د چڼو پېغلو
له سپینو سپینو مړوندونو نه د وینو لمبې داري وهي
د ښار واټونو کې ګزمه ګرځي د وهم د ېوان
او ګرځوي پر دواړو ولو د مرګونو ډالۍ
په څلور لارو کې دي جوړې هدیرې د ژوندون
هره کوڅه د ښار رنګ شوې ده په اوښکو وینو
اوس د بنګړیو بازار سوی دی د غم په لمبو
او د شنو، سرو، سپینو بنګړیو پرځای
د رنګارنګه کارتوسونو درمندونه جوړ دي
او د عطار له هټۍ نه راځي د عطرو او لونګو د وږمو رنګین رنګین تخیل.
اوس هر ماښام له شپږ پوړیزو خونو

پېغلې د خپلې حيا روح سپاري
د خدای(ج) دفرښتو ګوتو ته
او د سپېڅلې ځمکې غېږې ته پنا وروړي
خو امام ناست دی د هوس په مرمرينه خونه
په خپلو ګوتو د وطن د مرګ تسبيح تېروي
او د قدرت د جنون
د خوږو ميوو په ډنډونو کې بربنډ لامبي
او د ژړا پر ځای شکرونه باسي.

۱۲/۹/۱۳۷۲
کابل

# د اور په جبل کې

په اوښکو لوند په وينو سور قسمت
زما په برخه شو منصور قسمت

چا وې د ناز غرو ته دې سرټيټوم؟
درته ټيټ کړی يم مجبور قسمت

هر اسوېلی مې شي پرهر په شونډو
په زړه مې لوبې کړي ناسور قسمت

ددې ټپي وطن ګزک زخمونه
کله جوړېږي په رنځور قسمت

زه پــــرې ګـــلان، دی پــــر مــــازهر شـــيندي
ماتــــه جـــوړ شـــوی دی تربـــور قســـمت

ځــواني مــې تېــره کــړه د اور پــه جېــل کــې
بـــدل مـــې نـــه کـــړ رنتبـــور قســـمت

د ســـره دوزخ د لمبـــو تـــاو مـــنم خـــو:
جنـــت کـــې نـــه غـــوارم مـــزدور قســـمت.

۱۵/۱۱/۱۳۷۲
تېمرګره- دير

# پوړنی

هغې د ژوند پاڼې کړې ژېړې د جانان د پسرلي په هیله
هغې د خپلې فرښتې غاړې امېل څخه کړه جوړه ګردنۍ د ټوپک
د خپل باتور جانان لپاره په وربښمینو ګوتو
هغې پنځه لس کاله تېره کړه د ژوند څپه پر شونډو لکه
زهر د مرګ
او اخترونو کې یې ونه لیده چا پر سرو ورغوو د نکریزو سپوږمۍ
هغې په شپه ورځ کې پنځه وخته دربار ته د خدای(ج)
د تقدس په وربمو وړله د جانان د مقدس جنګ د بري سندره
خو یوه ورځ یې جانان راغی ددې کوره پورې
جامې یې سرې ګردنۍ سره وه په اهونو او سرو وینو باندې
او د ټوپک له خولې یې سره او شنه لوګي جګېدل
نو چې یې ولګېدې سترګې د هغې په ولولیزو کتو
او ښا پېریزې ښکلا
د تور ټوپک په میل یې کش کړ له معصومو زلفو
د زر کلن عفت سورکی پوړنی

کوڅه کې شور شو او هاها شوه کوڅه رڼګه شوله
د ښار واټونو کې د بنګو او د چرسو واټ شو جوړ
په یوه نوي ریتم
او بیا بنګیانو دوړې پورته کړې له خپلو ولو
پېغله یې ګډه کړه بربنډه لکه سپینه او معصومه سپوږمۍ
او د هوس سترګو پرې جوړ کړل پر زړګي زخمونه
د پېغلې مخ باندې خورې شوې د نرې رنځ د نهیلې ژوند
داوښـــــــــــــکولیکې،
خو پېغلې پورته نه کړه دا ځلې د خدای(ج) دربار ته
سپین لاسونه
او د نهیل شمال په مړو وږمو یې
د مات ولس ټپي اهونو ته
په نرمو شونډو ورو وویل:
((پر ږدئ چې خړ سېلاب مې یوسي
په لامبوزن جانان مې ډېره نازېدمه ))

۲۰/۱۱/۱۳۷۲
تېمرګره-دیر

# د رڼا حورو !

چې دې په سترګو کې نیولی نه یم
ښکاري همدا چې دې بللی نه یم

د اسوېلو مزل د هجر د ښتې
په لنډه لار درته راغلی نه یم

هره موسکا دې زړه کې اور بلوي
په خوله یم چوپ د ننه غلی نه یم

د نـــاز د غـــرو خنـــدا دې وړلای شـــمه
د غـــم فرهـــاد يـــم نـــازولی نـــه يـــم

د رڼـــا حـــورو شـــپه راټولـــه نـــه کـــړئ !
زه يـــې تـــر شـــونډو رســـېدلی نـــه يـــم.

۲۴/۱۲/۱۳۷۲
الينګار- لغمان

# د زهرو فصل

د رڼا پانې خو مو بلې کړې د شپې په لمن
خیر که یو څو داغونه شنه شول د ډیوې په لمن

د جنت مینه د ښکلا د عواطفو ستوري
موږه کرلي دي د خپلې معشوقې په لمن

احساس شو مات خندا ژړېږي ښکلا نه غوړېږي
چا کړ د زهرو فصل شین د عقیدې په لمن

زما پر زړه د پرهرونو د سپرلي ګلونه
دومره تورونه لګېدلي دي ددې په لمن

اوس به د جام شونډو کې چېرې وي موسکا د میو ؟
د عقیدې سېلاب شو خور د میکدې په لمن

شونډې مې رېږدي زړه مې تښتي ویې نه شمه چې:
څومره ژړا وه د کابل د هدیرې په لمن

نور د هوس د جنتونو ډنډ کې ولمبوئ
ما ویده پرېږدئ تل د مینې د نشې په لمن

د سترګو یون، د زلفو یون، د شونډو یون جانانه !
څنګه دې یوځای کړل د خپلې ارادې په لمن؟

۲۲/۱۲/۱۳۷۲
الینګار- لغمان

## چا ويل چې د ګلونو ښار به وران شي؟

چا ويل چې د جنت حورې به وزانګي د اور په تنابونو
په پستو ګلابي شونډو
په وربښمينو نرمو پښو؟
چا ويل د قاف د غره د ېوان به راشي
د وحشت د عقيدې له اباسينه
او زمونږ د ارمانونو د جنت ناوې به تاوه کړي
د خپلو هوسونو د زهرونو د شپو جام کې؟
چا ويل زما د مينې په کابل کې به (يزيد ) راژوندى کېږي
جوړوي به د ګلونو له سرونو درمندونه
نړوي به د ښکلا د عواطفو محلونه؟
چا ويل يو چنګيزي شمال به بيا له پورته راشي

د مینو د ګلپاڼو په رنګونو
د ملالو د غیرت په میوندونو
او د ګلو ښار به بیا له سره وران شي
د وحشت په ځناورو او دېوانو
او په خپلو چنګیزیانو یزیدانو؟

۱/۱/۱۳۷۳
الینګار-لغمان

# ولولیز پسرلی

د ارمانونو زړه مې دې یووړ
لکه د ورځې روح چې شپې یووړ

د غریزې د میوو مست سباوون
توري راکښلې عقیدې یووړ

د ولولیزې ځوانۍ سور پسرلی
په یو نظر رانه هغې یووړ

د ژوندون روح رانه په نوم د جنت
پر دین میني معشوقې یوو ړ

لا مو د قهر په تاو سبزي هیلې
څه که ارمان موتر کعبې یوو ړ

عشقه تباه شو ستا د حسن لمر
چا په سره زور چا په پلمې یوو ړ.

۱۹/۱/۱۳۷۳
نصرو کلا - کابل

# د اوښکو احرام

(د یوې ګډې مشاعرې په ترخ کې)

((که چا پېر له تورو سترګو لام په کار دی
غله په زړونو لګېدلي پام په کار دی))

چې زنځیر د مغولیزو وختو مات کړي
یو خوشال مې د منصور د قام په کار دی

ستا د ښکلو او شیرینو شونډو زور ته
ګلې ماغوندې فرهاد بدنام په کار دی

د سهار په رڼاګانو ډېر شکمن یم
زما مینې ته سکنی ماښام په کار دی

چې ستا سرې کافرې شونډې رنګ په عشق کړي
زمانه ورته موسکی اسلام په کار دی

ستا د مینې دښکلا طواف ته یاره
د رڼو اوښکو یو سپین احرام په کار دی

د کابل حسین زړګیو شهیدانو
د یزید دوزخ کې نور قیام په کار دی

د وطن د حسن پانې مې باد یووړې
ورته نور د ترحم نظام په کار دی

د احساس د نوح بېړۍ په ډوبېدو ده
د غمیزو د توپان فرجام په کار دی

د هوس ستورې دې خاندې تاج محل کې
مور مینو ته د عشق مقام په کار دی.

۱۳۷۳/ چنګاښ
پېښور

## او د ګلو د سندرو اتڼ بیا له سره وران شو

زماني د زماني لمن نیوله،
شپه د ورځې، ورځ د شپې د روح په وړانګو
د تقدیر مزو تړله
زېږېدل په کې د لمر ژوندون ستوري
د ګل پېغلو له سورکو نازکو شونډو
سندریز تفکر زړونو کې وزر وغوړولی
عقیدې و عواطفو ته ځیګر په لاس نیولی
د ګلونو د سندرو اتڼ جوړ و
نڅېدل ورته د مینې د غاټولو ځیګرونه
تاوېدل ترې د وږمو د تخیل د بڼ ګلونه

خو يو (چا) له کومه راوړ
د کينې د زهرو جام
د پستو پستو خبرو له خوږو ميو نه جوړ
او نړدې يې کړ د مينې عقيدې د سورکو شونډو تر سرونو
عقيدې لا په سر نه و اړولی د کينې د زهرو جام
چې د شونډو د احساس پر زړه يې راغلل خزانونه
په زړګي کې يې شول مړاوي د ښکلا د عواطفو سره ګلونه
نو شوه ټوله عقيده د زهرو روح د قهر سيند
بيا يې لوټ کړل د سپېڅلو احساساتو ارمانونه
د وړمو د سپوږمۍ حسن د خوږې مينې وزرونه
او د ګلو د سندرو اتڼ بيا له سره وران شو.

۱۲/۱/۱۳۷۳
کارګري قصبه- کابل

## يو جانان او يو جام

چې د رڼا په لوري ګام اخلو
موږ يې له زلفو انتقام اخلو

د مقدس اور عبادت وي مينه
خود يې له شونډو نه الهام اخلو

د روح وطن يې راته رنګ کړ په غم
اوس يې هم نوم په احترام اخلو

نمــــرود وختونــــه شــــي شــــداد شــــي امــــام
هــــر خــــو کــــه ذکــــر د اســــلام اخلــــو

عشــــقه دا ســــتا لــــه غورېــــدلي جنــــت
مــــوږ يــــو جانــــان اخلــــو يــــو جــــام اخلــــو.

۱۳۷۳/زمری

# خوا ږه خوا ږه زخمونه

سترګې مې ډکې شوې د اوښکو د لمبو له تاوه
د زړه پردو کې مې د غم زلزلو جوړه کړه د وهم شپه
زړګی مې وایي چې د خپلې معشوقې مخ کې په زوره زوره وژاړمه
او د احساس لمبې سرې کړمه په خپلو چغو
خو دې ګلپاڼې معشوقې مې په سورکیو او چاودلو شونډو
چې د سیلیو ګرد یې ناست و پر خوږو اننګو
او د زړګي له هر یو تار یې څڅېدلې وینې
د حال په ژبه راته ورو وویل:
((زه پر تا څومره نازېدمه
تا په سرو شنو دېوانو خرڅه کړم مینه.
د سترګو توره نو اوس:

ماته مې خپل غمونه ډېر دي
په لویه لار کې راته مه ژاړه مېنه ))
نو ماچې تېټ کړ د احساس سر د ویده تفکر سور کړېوان ته
زړه راته وویل زما معشوقه ((خاوره )) د دردونو له بېږ
د حقیقت په ژبه
څو مره خوارېږه زخمونه سپړي.

۱۷/۱/۱۳۷۳
نصرو کلا - بګرام

# د ستورو قافله

ستر ګو نه ستا د مخ ډیوه تېر وو
ځکه تر وړانګو لاندې شپه تېر وو

د زړګي پاڼې غوړېدلې پرېږده
ورته د ژوند ټپي کیسه تېر وو

ستا د موسکا د پسرلو په هیله
پر زړګي ژوند لمبه لمبه تېر وو

هـر اسـو ېلی مـې شـي منصـوره وینـه
ژونـدون پـه دار لکـه نشـه تېـروو

شـهید وطنـه ! سـتا د زړه پـردو کـې
یـو وخـت د سـتورو قافلـه تېـروو

شونډې پر شونډو راته کېږده موسکۍ
روح تـه د سـره دوزخ وږمـه تېـروو

د خنـدا پېغلـو وربلونـه تیـتې کـړئ
د یـون د هیلـو جنـازه تېـروو.

۷/۸/۱۳۷۳
کاګري قصبه- کابل

# مړاوی جانان

چې هم دې فکر هم ایمان شي جانان
څو مره به مینې درته ګران شي جانان

د زړه په پاڼو مې بلېږي هجر
کاشکې چې پرخه شي باران شي جانان

د روح غوټۍ مې په کې وغوړېږي
ماته هم دین شي هم قران شي جانان

د تخیل په وزرو خېږم ورته
خیر دی که ستوری د اسمان شي جانان

دو مـــره ګلونـــه پـــرې د اوښـــکو شـــيندم
چـې پـه شـمېرلو يـې سـتومان شـي جانـان

بيـا بـه مـې پرېـوزي دګرېـوان پـر کلـي
چـې مـې تـر اوښـکو نـه ارزان شـي جانـان

چـــې د خپـــل زړه دښـــار جنـــډې ووينـــي
ځـــومره بـــه مـــړاوی را روان شـــي جانـــان

درد بـــه دې وي خومحسوســـېږي بـــه نـــه
چـې هـم پـردی شـي هـم دې ځـان شـي جانـان

وړې د لونګـــو ښـــار تـــه ښـــکلې پښـــتو
ګوندې چې (يون) ددې ((کاروان) شي جانان.

# د سمال

یــــو ګـــــل دې لــــه وربلــــه نــــن شـــمال راوړی دی
زمـــا ســــوو داغونــــو تــــه یـــې شـــال راوړی دی

زمـــا پــــر مــــړاوي روح بانـــدې دې وشــیندل ګلونــــه
څـــه رحـــم دې پـــه زړه کــــې ذوالجـــلال راوړی دی

د شعر زړګی مې ګل شو پټ په شونډو کې موسېږي
کــــوم چـــا ورتـــه د تـــا د ســـترګو خیـــال راوړی دی

د څـــو کلونـــو درد مـــې پـــه یـــوه شـــېبه کـې هېـــر کـــړ
ریبـــار مـــې ستاســـو کـــور څنـــې د ســـمال راوړی دی

اشنا واک دې منم چې هم مې ښکېل هم مې ازاد کړې
یـــوه لاس کـــې دې جـــال او بـــل کـــې تـــال راوړی دی

جانانــه تنــدی وریــن کــړه بیــا یــې مینــه بانــدې کېــږده
د زړه لـــه وینـــو جـــوړ مـــې درتـــه خـــال راوړی دی.

۱۵/۲/۱۳۷۴
کارګري قصبه- کابل

# د مینې پیغمبر

یو سپین د سبا ستوری وم سهر وژلی یم
د ګل د شونډو پرخه وم لمر وژلی یم

په زور نه یم مات شوی ښکلیه پورته راته ګوره
د تا په نوم یې یاره په هنر وژلی یم

کوم څوک چې مې په زړه کې پیغمبر د مینې جوړ کړ
د روح پر کور مې ناست دې پیغمبر وژلی یم

دد غــه کلــي پېغلــې او منګــي پــر مــا خبــر دي
ګـــــودر يمـــــه وژلـــــى مـــــازيګر وژلـــــى يـــــم

د کـوم مغـول لښـکر مـې د زړه ښـکار کـې پلـى نـه دى
شمشــاد پــه وينــو ســور يمــه خيبــر وژلــى يــم

پــه دې کــې د رقيــب د تــورې ښــه ګــوره نــه شــته
د خپــل دلبــر پــه غېــږه کــې دلبــر وژلــى يــم.

۱۳۷۴/زمرى
کابل

# د سرو ټپونو کان

د زلفو په تیارو کې دې په نور نیولی یم
بس زه خو دې د ظلم په تنور نیولی یم

سهر په وینو رنګ کړمه ماښام په اوښکو لوند
د وخت امام دا زه څنګه تربور نیولی یم

د زړه شیمه مې نه شته هسې مینه مینه وایم
دې لوز ته چې هم ټینګ یمه غرور نیولی یم

دا شــونډې پــانې پــانې چــې وربــږې پــر مــا هســې
جانانــه بيــا دې كــوم غــم تــه ضــرور نيــولی يــم

د ســتورو پــټ خــو هغــو جــادوګرو شــغلو مــات كــړ
دې تنــدر نــو زه لمــر پــه كــوم قصــور نيــولی يــم

د زړه د پرهــرو پټــري مــې چــوي خند يــدی نــه شــم
د ســرو ټپونــو كــان يمــه ناســور نيــولی يــم

چــا وې غبــږه جنــت، شــونډې شــراب زلفــې وږمــې دي
دا ځكــه ورتــه زه همــېش تــرور نيــولی يــم.

۹/۲/۱۳۷۴
مكروريان- كابل

# د پاڼو مومن

ماښـام شـو خـور د سـهرونو پـر بـام سـيوري کـوي
لکـه کـوم ذهـد چې د شـونډو پـر جـام سـيوري کـوي

لمــر راخېــږي لــه مغربــه د نمــرود پــه ګوتــو
د شـرق د ښـکلو لمـر ګلـو پـر قـام سـيوري کـوي

د پيغمبـر فکـر ژونـدي دی خـو د زړونـو پـر تخـت
پـه وينـو سـور يـو د جـاليزه امـام سـيوري کـوي

ددې ښامار وژل د پانو مومن نه شي کړلی
دومره هوښيار دی چې پر ونو په پام سيوری کوي

زړه مې لمبه شي چې دې زلفې پرمخ وغوړيږي
کفر ته ګورم چې پر ښکلي اسلام سيوری کوي.

۱۳۷۴ ال کال

# د صراط پُل

چې ستا په تخيل مې تخيل نيولی دی
منمه د ګل شونډو کې مې ګل نيولی دی

دا خال د سپين تندي دې پاکوم د زړه په توره
موږ تل په تاترو باندې مغول نيولی دی

د زړه وينې مې ثاخي لاس دې لرې که جانانه
(کوم د بو) غوندې دې سخت لکه کابل نيولی دی

مجبور به د هر ښکلي د خندا په لمبو سوزي
دا زړه چې مو هر چاته په منګول نیولی دی

د مینې قاتلان یې ځنې څرنګه تېرېږي؟
زما مظلوم ملت د صراط پل نیولی دی

په سترګو کې دې یون شوم زړه کې یون په خوله کې یون شوم
دې مینې دې څه ښکلی تسلسل نیولی دی.

۱۳۷۴/مرغومی

# د جام جنازه

يو شور شو د جامونو شو قيام په ميکده کې
چا وې پرون ساقي شولو اعدام په ميکده کې

سهر د لمر په وړانګو جوړوي تسبيح له ستورو
د روح امام يې ناست وي هر ماښام په ميکده کې

ساده زړونو سجده کړه د محراب په لور په مينه
د فکر ستورو وليده امام په ميکده کې

لــه ســـترګو يـــې د اوښـــکو پـــاڼې ورو ورو تو ېـــدلې
د جــام جنــازه پورتــه کــړه بــل جــام پــه ميکــده کـــې

تــر ســپين قرانــه لانــدې د جــامونو ډنــډ کـــې ګـــورم
د مکـــر ذاهـــد بيـــا تـــړي احـــرام پـــه ميکـــده کـــې

د زړه د وطــن ښــار مــې يــو ځــل بيــا پــه وينــو لامبــي
نــن بيــا نــرخ ټاکــل شــوی مــې د قــام پــه ميکــده کــې.

۱۳۷۴ل کال
کابل

# د سندرو په وزرونو

یو عشق مې لوبولو د سندرو په وزرونو
کوم چې رانه شهید کړلو د زغرو په وزرونو

شمله شمله لوګی شو د غره غېږې ځنې پورته
څه اور دی لګېدلی د نښترو په وزرونو

یو دېو د قاف د غره په ځنګلونو کې مېشته دی
د ژوند ډولۍ مې وړې د سوداګرو په وزرونو

د ښــــار د پېغلــــو خــــال وړي او د غــــاړو امېلونــــه
يــــو دوه مــــاران راوړي جــــادوګرو پــــه وزرونــــو

څــه لــو دی د ګــلاب ګــلاب ســرونو پــه وطــن کــې
يــو اور خــو خدايــه بــل کــړې د لــوګرو پــه وزرونــو

پــرون رمــه لــه غــره نــه راغلــه کلــي تــه يــوازې
څــه ســره وينــه پرتــه وه د ګــور ګــورو پــه وزرونــو.

۵/۲/۱۳۷۵
کابل

# شهيد غرونه

د مينـــې ســـتورى مـــې غـــاټول نـــه دى
ځکـــه زړګـــى مـــې پـــرې راټـــول نـــه دى

غرونـــه شـــهيد دي، دښـــتې بـــورې ناســـتې
ورتـــه امېـــل د ګلـــو شـــپول نـــه دى

زړونـــه مـــو اخلـــه خنـــدا مـــه راکـــوه
د مينـــې ښـــار دى کـــار پـــه تـــول نـــه دى

څپې څپې دریابه غلی دروم‌ه
د ژوند ماڼو مې سندر بول‌نه دی

ستوني زبېښي د ښار د هرې پانې
له میوډک یې لا کنډول‌نه دی.

۵/۵/۱۳۷۵
کابل

# څلور شپې

د ژوند سندره لیکمه د ګلو په خولو
د شعر ځیگر مې وینځمه د ښکلو په خولو

د وهم د بو څلورو شپو کې تېر کړلو له ستوني
کوم ښار چې و جوړ شوی د نتلو په خولو

د یار سترې احساس مې په کې ورو ورو خوبومه
د زړه سیوری مې لوند دی د سنځلو په خولو

دی جــوړ زمــوږ لــه وینــې، دی جــوړ د چـا لــه مینــې
د ژونــد څــراغ بــل نــه شــو د ښــاغلو پــه خولــو

د شــنې جلګــې لــه پاســه کــړه پــر ســپینو لېچــو دمــه
کــوم چــا درتــه وینځلــي د شــنو ولــو پــه خولــو

اشنا لاس دې نږدې کړه چې پـه سترګو ورتـه ځیر شم
د بخــت ســتوری مــې ګــورم د منګولــو پــه خولــو.

۲۸/۵/۱۳۷۵
کارګري قصبه-کابل

# ستوري لمرونه

د جانان شنه خندا مې بيا له کومه لوري راځي
د غزل اوښکو کې مې بيا د مينې توري راځي

دلته هر غم قدم په پام ږدي بيا ښکلا لټوي
د تلې ښار دی غم هوښيار دی سودا ګوري راځي

د شعر مېوه مې زېږېخنه ده بازار نه لري
د ژوند پر هر فصل مې ډول ډول سيوري راځي

بیا تلی سپین امام د قاف د ځنګلونو د بو ته
زمو ږد اوښکو هیلې بیا په هغو پلوري راځي

زړه کې مې ګرځي یوه ګرمه شان وږمه د پښتو
د قلم نوکې ته مې ټول تکي سرزوري راځي

بیا مې د زړه ارمان موسکی شي بیا شي مړاوی غوندې
چا وې وطن ته دې لمرونه چا وې ستوري راځي.

۱۳۷۵ل کال
کابل

# د روح سپېڅلی زور

د هیلــو شــونډو کــې مــې پــانې بیــا ثمر نیســـي
پـــس لـــه کلونـــو مـــې ګلونـــه بیـــا ګـــودر نیســـي

زه یـــو ســـېلاب شـــومه د اوښـــکو او ســـرو اســـوېلو
دی راتـــه لار کـــې د ســـپېرو شـــګو ســـنګر نیســـي

دا چـــې شـــمله یـــې راټیټېـــږي نـــه، جګېـــږي پســـې
دا خـو پـرې خدای(ج) د خپلې مینې خپـل وزر نیسـي

پــرون یــې ســر کــې وه نشــه د فرعونیــت د فکــر
نــن راتــه خــړې خــړې ګــوري ځــان او تــر نیســـي

دا خـو د روح سـپېڅلي زور دی د خدای ج عشـق وینځلی
پــه یــوه وړانګــه چــې د ټــول تــورتم لښــکر نیســي

بیـــا د نـــازو بچیـــو وتړلـــې تـــورې تـــر مـــلا
چـا د ګـورګین د مـرګ ویـل چـا وې شـیبر نیسـي.

۲/۳/۱۳۷۲
کابل

# د شعر پري

د ښکلا سیمه شپې نیولې ځانته ښار جوړوي
د ژوند په هر واټ کې د دار له پاسه دار جوړوي

موږه د لمر وړمې شهیدې کړې د شپې په کانو
اوس مو له کلي پټ تېرېږي بله لار جوړوي

ما ځنګوي د تیارو څڼو کې د خدای(ج) په نامه
ځانته د ژوند په نوم یو ښکلی سپین سهار جوړوي

ربه د تا په نوم مې ژوند اخلي په خپله ګټه
د وخت واکمن څومره هوښیار دی څه ښه کار جوړوي

کلــه د ښــو پــه نــوم قربــان کلــه د بــدو پــه نــوم
دا فرښــتې څــومره پــه ســخته زمــا بــار جــوړوي

د شــعر پــري مــې مــروره شــوه د شــعر لــه روحــه
ســپينې خبــرې دي لــه شــعر ځنــې شــعار جــوړوي.

۱۳۷۵ل کال
کابل

# سندريزه وږمه

د ژوند په هر فصل مې ځي راځي غميزه وږمه
د زړه په پانو کې مې رپي دا دوديزه وږمه

زه د وربښمو د رباب تارو ته خوب کومه
جانان مې خيال باندې راشيندي اوسپنيزه وږمه

شهيده وړانګه يم د خپلو ستورو شپو وژلې
زړه کې مې بلېده د خپل غشي اوريزه وږمه

د ژوندون هر واټ کې مو جوړ دي وژنځای د ګلو
لکه بيرغ پرې باندې رپي ارمانيزه وږمه

موږه غاټول زړونه قربان کړل په همدې هيله چې:
د ساندو کلي کې به راشي سندريزه وږمه

شمله زړه، پوړنی زوړ دی، منګی زوړ دی خو هم
څومره خوږه خوږه تري اوري پتمنيزه وږمه

د جنګ اسونو مې د دښتو ګلان ټول ستړي کړل
خدايه يو ځل خو پرې خوره کړې سوله ييزه وږمه.

**۱۳۷۲**ل کال د غويي **۲۲**مه
کابل

# د شعر حجاب

د ژوند مړاوې سندره مې رباب کې راولم
د وینښو شپو کیسه د عشق کتاب کې راولم

دا سر ربه ! مات شوی دی، ټیټ شوی چاته نه دی
خو تاته یې پنځه وخته محراب کې راولم

نن بیا د غزا ډول د هندوکش په سر غږېږي
سپېرې طالبې څڼې مې په تاب کې راولم

د نقد ملایان ګرځي له دُرو سره په ښار کې
د شعر پېغله مې ځکه په حجاب کې راولم

زمـا ترلــي لاس وو ســتا درنــې ځپېــړې
یــو وخـت خـو بـه اشـنا دا پــه حسـاب کــې راولــم

د سـره قهـر غلامــه بیـا د چـا غېــرېږ تــه درومــې !
د ســپینو وړانګــو تـاو بـه پــه کـولاب کــې راولــم

خندا موسکۍ موسکۍ شي چې پر شونډو د کبانو
یــو شــور خــو د ســندرو پــه دریــاب کــې راولــم

پــه دې بــه هــم د ډېـرو لــه زړګــو شــي لمبـه تــاوه
دا وران د زړه وطــن چــې نغمــه بــاب کــې راولــم.

۱۳۷۵ل کال د کب ۱۷مه
لغمان

# د محمد اسمعیل یون لنډه پېژندنه



محمد اسمعیل یــون د حــاجي محمـد خان زوی پـر ۱۳۴۲ل کـال، د لغمان ولایت د الینګـــــار ولســـــوالۍ دنیازیو پـه یـوې روښـــنفکرې کـــورنۍ کـــې زېږېدلی دی.

لـومړنۍ زده کړې يې د الینګار ولسـوالۍ د سلینګار پـه لـومړني ښوونځي کې سرته رسولي دي، تر هغه وروسته کابل ته راغی او په خوشال خان لېسه کې شامل شو. پر ۱۳۶۲ل کال له نوموړې لېسې څخه په دویم نومره بریالی او پر ۱۳۶۷ل کـال د کابل پوهنتون د ژبو او ادبیاتو پوهنځي د پښتو څانګې محصل شو. پـر ۱۳۷۰ل کـال لـه نومـوړې څـانګې څخـه اول نـومره بریـالی او پـر همـدې کـال بېرتـه د پښتو څانګې د کدر غړی شو. پـر ۱۳۸۵ل کـال پـه نومـوړې څانګه

کې د ماسترۍ دوره پیل شوه، یون په ډېر ښه او بریالي ډول دا دوره پایته ورسوله.
محمد اسمعیل یون له ۱۳۷۰ ل کال څخه بیا تر ننه پورې د کابل پوهنتون د ژبو او ادبیاتو پوهنځي تدریسي غړی او د(پوهندوی) علمي پوړۍ ته رسېدلی دی، پر استادۍ سربېره، استاد یون د ((کابل پوهنتون))، ((هیلې)) او((شمشاد ))مجلو د چلوونکي دنده هم په ښه ډول ترسره کړې ده. په پېښور کې د چاپېدونکې ((معارف)) مجلې کتونکی غړی هم و. همدارنگه دیو شمېر نورو چاپي خپرونو همکار هم پاتې شوی دی.
استاد یون پر ۱۳۸۱ ل کال، په جلال اباد کې بېړنۍ لویې جرگې ته د ختیزو ولایتونو د انتخاباتو د دفتر مشر شو، ددې جرگې لپاره تر ټاکنو وروسته د جرگې غړی، بیا د جرگې د غړو له خوا د بېړنۍ لویې جرگې دلومړي منشي په توگه انتخاب شو. استاد یون په دې جرگه کې تر خپل وروستي وسه خپل ملي او تاریخي مسولیت ادا کړ او د هېواد دښمنه عناصرو د توطیو مخه یې ونیوله.
تر دې جرگې وروسته، کله چې د افغانستان د اساسي قانون د تدوین بهیر پیل شو، نو استاد یون بیا ددې بهیر لپاره د ختیزو ولایتونو د دارالانشاد دفتر مشر وټاکل شو. په ختیزو ولایتونو کې د اساسي قانون د لویې جرگې لپاره انتخابات هم د همدې دفتر له خوا ترسره شول.استاد یون د اساسي قانون د تصویب په لویه جرگه کې د نوموړې جرگې د دارالانشا د غړي په توگه خپل فعال رول ادا

کړ. ټاکل شوې وه، استاد یون په ختیزو ولایتونو کې د افغانستان د جمهوري ریاست لپاره د عمومي ټاکنو د دفتر مسول شي، خو په کابل کې د لویو جنګسالارانو او ځینو تنظیمي مشرانو له خوا پر حکومت او ملګرو ملتونو د زیات فشار له امله له کاره ګوښه شو. ملګرو ملتونو (UNAMA) استاد یون ته وړاندیز وکړ، چې په کابل کې به تر دې لوړه دنده دروسپارو، خو استاد یون ونه منله او خپلې استادۍ ته یې دوام ورکړ.

درې کاله وروسته یې د ځینو ملګرو په زیات ټینګار او غوښتنه، د جمهوري ریاست د ملي امنیت شورا په دفتر کې د فرهنګي چارو د ریاست دنده ومنله او په کابل پوهنتون کې پر استادۍ سربېره لا تر اوسه دا دنده پر مخ وړي. استاد یون پر ۱۳۸۵ل کال د افغانستان او پاکستان د امن ګډې جرګې لپاره د افغانستان له خوا د منشي په توګه غوره شو او دا دنده یې هم په ښه ډول ترسره کړه.

استاد یون د خپلو اکیکوال په توګه په تېرو شلو کلونو کې ګڼ شمېر فرهنګي او ټولنیز خدمتونه ترسره کړي، په ګڼو چاپي، راډیویي او ټلویزیوني مرکو کې یې د واقعیتونو او حقایقو د څرګندیدیان له امله د خلکو په زړونو کې ځای نیولی دی. که څه هم ډېر خلک د یون لیکنې، مرکې او نظریات خوښوي، خو یو شمېر داسې خلک هم شته، چې د یون سرسختي مخالفین دي. د هغه ملي او ګټورو نظریاتو ته هم غلط رنګ او تعبیر ورکوي، دا ډول اشخاص، چې اکثره یې زورواکي او د سیاسي ډلو ټپلو غړي او

مشران دي، د استاد یون نظریات خپلو شخصي او تنظیمي ګټو ته خطر بولي، نو ځکه یې په ټینګه مخالفت کوي. زه ددې شاهد یم، هر کله چې یون کومه لیکنه او مرکه کړې، نو دده پر وړاندې یې مثبت او منفي غبرګونونه دواړه راپارولي دي، منفي غبرګونونه اکثره وخت د هغو اشخاصو او ډلو له خوا وي، چې په تېر کړکېچن سیاسي بهیر کې یې ډېرې نامشروع ګټې ترلاسه کړي او ځانونه یې مطرح کړي دي.

مثبت غبرګونونه اکثره د ولس د مشرانو، روښنفکرانو او نورو مخورو له خوا وي، خو استاد یون په دغسې سختو اغزنو او تنګو شرایطو کې بیا هم خپل فرهنګي، سیاسي او ټولنیز کار ته دوام ورکوي.

دا اوسنی فرهنګي کار، چې تاسو یې اوس په مسلسل ډول ګورئ، دا د تېرو شلو کلونو کارونه دي، چې له تېر یو نیم کال راهیسې پرې په منظم ډول کار شوی، اوډل شوي او دادی ستاسو مخې ته اینبودل کېږي، په داسې یو دولتي دفتر کې چې بوختیاوې په کې ډېرې وي، د منظم او ستر فرهنګي کار سرته رسول اسانه کار نه دی.استاد یون پر خپلو فرهنګي کارونو سربېره د ګڼو فرهنګي ټولنو د غړي، همکار او موسس غړي په توګه هم خپل فرهنګي رول ادا کړی، په پېښور کې یې د دوو المان مېشتو فرهنګي ټولنو (د افغانستان د کلتوري ودې ټولنې) او (د پښتني فرهنګ د ودې پراختیا ټولنې) د همکار په توګه د بېلابېلو لیکوالو په لسګونو

اثـار، ایـډیټ او چـاپ کـړي دي. دغـه راز یـې پـه سـلګونو کورنیـو مشاعرو، ادبي غونډو او سیمینارونو کې ونډه اخیستې ده، خپله یې هم په لسګونو مشاعرې، سیمینارونه او علمي ورکشاپونه جوړ کړي دي.
سربېره پر دې، په یو زیات شمېر، ملي او نړیوالو کنفرانسونو کې یې په ښه ډول د خپل هېواد استازي کړې ده. دلته به یې د اثارو یادونه وکړو:

## اثار

### الف- پنځونې:

| کتاب نوم | څرنګوالی | چاپکال |
|---|---|---|
| • متکور | لومړی شعري ټولګه | دویم ۱۳۸۷ |
| • په اورونو کې سندرې | دویمه شعري ټولګه | دویم ۱۳۸۷ |

### ب- راټولونې:

| | | |
|---|---|---|
| • هیلې | ګډه شعري ټولګه | دویم ۱۳۸۷ |
| • نیمګړي ارمانونه | د حیران شعري ټولګه | دویم ۱۳۸۷ |
| • د لوونو فصل | ګډه شعري ټولګه | دویم ۱۳۸۷ |
| • د نازو انا یاد | د سیمینار د لیکنو ټولګه | دویم ۱۳۸۷ |
| • د استاد الفت نثري کلیات | د استاد الفت نثرونه | درېیم ۱۳۸۷ |
| • سیندونه هم مري | د اسحق ننګیال شعري منتخبات | دویم ۱۳۸۷ |

### ج- ژباړنې:

• د ټولنپوهنې له نظره: په افغانستان کې د واک جوړښتونه د پوهنوال روستارتره کي اثر — دویم ۱۳۸۷

- .د افغانستان فرهنګي میراثونو ته یوه کتنه
  د نینسي دوپرې اثر دویم ۱۳۸۷
- په افغانستان کې د جګړې جنایتکارانو محاکمه
  د پوهنوال روستار تره کی اثر دویم ۱۳۸۷

## د- یونلیکنې:

- د اماراتو سفر د اماراتو یونلیک دویم ۱۳۸۷
- که یون دی یون دی د اروپا یونلیک لومړی ۱۳۸۷
- د پښتنو ګون ترڅنډو د امریکا یونلیک لومړی ۱۳۸۷

## هـ- څېړنې او شننې:

- د محمد ګل خان مومند اند و ژوند ته یوه لنډه کتنه دویم ۱۳۸۷
- استاد زیار د پښتني فرهنګ یو ځلاند ستوری دویم ۱۳۸۷
- دکابل پوهنتون د ادبیاتو پوهنځي پښتو کتابښود دویم ۱۳۸۷
- د افغانستان فرهنګ ته اوښتي زیانونه دویم ۱۳۸۷
- د پښتو شعر هندسي جوړښت شپږم ۱۳۸۷
- له افغانستانه د مسلکي کادرونو د فرار عوامل دویم ۱۳۸۷
- ساینسي پرمختیاوې دویم ۱۳۸۷
- ببرړنی، لویه جرګه ولسواکي او زورواکي دویم ۱۳۸۷
- اند یال خوشال لومړی ۱۳۸۷
- هیله د خپلو سریزو په لمن کې لومړی ۱۳۸۷
- کلتوري یون لومړی ۱۳۸۷
- فرهنګي فقر لومړی ۱۳۸۷
- مرکه او مرکې لومړی ۱۳۸۷
- خوشال په خپل ایډیال لومړی ۱۳۸۷
- دکتابونو په وړمو کې لومړی ۱۳۸۷

- افغانستان په سیاسي کړلیچ کې لومړی ۱۳۸۷
- پښتو لیکنی سمون لومړی ۱۳۸۷
- اوسنی رسنۍ لومړی ۱۳۸۷
- که نړیوال ماته وخوري؟ لومړی ۱۳۸۷

خدای(ج) دې استاد یون ته ډېر عمر ورکړي او جرئت دې ورته هم تاند لري، الله(ج) دې دی له هر ډول بدو بلاوو وژغوري، په فرهنګي کارو زیار کې ورته د نور زغم او اوسېلې هیله لرم.

په درناوي

وفاالرحمن وفا

کابل- افغانستان

